# لمونځونه

## دسُنّت طریقې سره سم اداکړئ


شیخ الاسلام حضرت مولانا مفتي محمد تقي عثماني دامت برکاتهم العالیه

مترجم
مفتي محمد معصوم افغاني



مکتبه حکیم الامت تهانوي
کاسي روډ کوټه

# لمونځونه

## دسُنَّت طریقي سره سم ادا کړی

شیخ الاسلام مفتی
حضرت مولانا محمد تقی عثمانی دامت برکاتهم العالیه

مترجم
مفتی محمد معصوم افغانی

مکتبه حکیم الامت تهانوی
کاسی روډ کوټه

# د کتاب پیژندنه:

نوم : لمونځونه دسنت طریقې سره سم اداکړی
لیکوال: مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب
ژباړونکی: مفتی محمد معصوم افغانی
لمړی طبعه: رمضان المبارك ۱٤۲۷ھ
دچاپ شمیره: زرټوکه
دوهمه طبعه: جمادی الاخری ۱٤۲۸ھ
دچاپ شمیر : یوولس سوه ټوکه
دریمه طبعه : شعبان ۱٤۲۸ھ
دچاپ شمیر: دوه ویشت سوه ټوکه
مطبعه : الجنت پرنټنګ مطبعه۔ کراچی
تلفون: ۰۲۱_۲۷٤۱۲۳۷

## سریزه

لمونځ د اسلام دمهمو عباداتو څخه دی. دالله عزوجل دتقرّب او رضا موندلو ډیره اغیزمنه ذریعه، ددنیا او اخرت دکامیابیو کلي ده. لمونځ افضل العبادات هم دی او جامع العبادات هم.

دلمانځه له روژي سره مشابهت دی، ځکه چي په لمانځه کښي هم خوراک نشته.

په دي کښي دزکوة رنګ هم شته، ولي چي په عامو حالاتو کښي دلمانځه داداکولو لپاره په مسجد، جامو او اودس باندي مال خرڅیږي.

په هغه کښي دحج خوشبوئي هم شته، ولي چي دکعبي له رب سره مناجات وي. دفقیري او عاجزی ټولي اداګاني پکښي وجود لري.

په لمانځه کښي جهاد مع النفس هم شته، کوم چي په حقیقت کښي عظیم جهاد دی.

بیا په لمانځه کښي دملائکو تسبیح او تقدیس هم شته. د ونو قیام، دڅاروو رکوع، دغرونو قعده او

دحشراتو سجده هم پکښې وجود لري.
لنډه داچې دنړۍ دکون اومکان. دهر مخلوق دعبادت څه ناڅه انداز په دې کښې موجود دی.
داسلام ستر پیغمبر احمد مجتبیٰ، حضرت محمد مصطفیٰ(صلي الله علیه وسلم)ارشادات هم دلمانځه اهمیت روښانه کوي. لکه چې فرمايي:
۱_ دمؤمن او کافر تر منځ توپیر په لمانځه سره کیږي .
۲_ کله چې لمونځ اداکوې، نو په داسې شان سره لمونځ اداکړه لکه چې دا ستا ورستنی لمونځ وي. یعني په ښه ادب.توجه او دسنت له طریقې سره سم يې اداکړه.
۳_زما دسترګو يخ والی په لمانځه کښې دی.
۴_اوپه ورستني وصیت کښې يې هم دلمانځه په هکله ډیر تاکید کړی دی.
۵_ حضرت بلال. (رضی الله عنه) ته به یې ارشاد کاوو: "ارحني یا بلال" یعني اذان وکړه، دلمانځه په کولو سره راحت راته موندل کیږي.

نامتو عارف ابو البركات، بدرالدين، شيخ احمد سرهندي حضرت مجدد الف ثاني(رحمه الله تعالى)فرمايي:

{نماز است كه راحت ده بيماران است "ارحني يا بلال " رمزيست ازين ماجراء "وقرة عيني في الصلوة " اشاره ايست باين متمنا.}

(لمونځ دی چي ناروغانو ته ارامتيا وركوي "ارحني يا بلال " ددي پيښي رمز دی.

او "قرة عيني في الصلوة "دي هيلي ته اشاره ده.)

دالله د دوستانو په لمانځه كښي چي كوم خوند او روحاني كيفيت حاصل وي، حضرت مجدد الف ثاني رحمه الله تعالى ور ته داسي اشاره كوي:

{رتبه نماز در رنگ رتبه رويت است دراخرت نهايت قرب ددرنيا درنماز است ونهايت قرب در اخرت درحين رويت.}

(دلمانځه درجه د رويت (دالله تعالى دديدار) په رنــــګ كښي ده.

داخـــرت ډيرقـــرب، ددنيا په لـــمانځه کښي ده. ډيرقـرب په اخرت کښي د رويت (دالله تعالی ددیدار) په وخت کښي دی.

په دې وړوکې رساله کښي، محترم استـــادشیخ الاسلام حضرت علامه، مولانا مفتي محمدتقي عثماني صاحب "دامت برکاتهم العاليه" دلمانځه بشپړه مسنونه طريقه بيان کړي ده او هم يي دنارينه او ميرمنو دلمانځه توپير بيان کړي دی، چي ددي په ذريعه دهر مسلمان ورور او خور په لمانځه کښي دحضرت محمد (صلي الله عليه وسلم) دمبارکي طريقي سره سموالی راشي.

داځه ستونزمن عمل نه دي. اميد دی چي ددي عمل له برکته، الله تعالی دخپل فضل او کرم معامله وکړي.

الله عزوجل دي وټولو ته دعمل توفيق راپه برخه کړي.

والسلام

فقيرمحمدمعصوم افغاني

يوم الجمعه، ۱۷ رجب، ۱۴۲۷هـ

## لمونځو نه له سنت سره سم اداء کړی

اَلْحمدُلله وَکفٰی وسلامٌ علی عِبادِهِ الذِیْنَ اصطفی.

لمونځ ددین ستن ده، هغه له سنت طریقي سره سم اداکول، دهر ملسمان دنده او مسؤلیت دی. خو موږ په بي فکریی او بیباکی سره، دلمانځه ارکان څرنګه چي موپه پوهه کښي وي، اداکوو. ددي خبري فکر نه کوو چي، دا ارکان په مسنونه طریقه سره اداسي. له دې امله، زموږلمونځونه دسنت دانوار او برکاتو څخه بي برخي پاته وي. حال داچې ددې ارکانو په سمه توګه اداکولو سره. نه وخت ډیر مصروفیږي او نه هم محنت ډیرغواړي.

لږ دتوجه خبره ده. که موږ لږتوجه وکړو، صحیح طریقه زده کړو اوداعادت وګرځوونو، په څومره وخت کښي چي موږ نن لمونځ اداکوو، په هغومره وخت کښي دالمونځ له سنت طریقي سره سم اداکیږي. ددې له

اجر اوثواب سره. سره انوار او برکتونه به يي هم تر نن ډير زيات وي

معززو اصحـــــابو رضي الله عنهم اجمعين دلمانځه د يوه ،يوه عمل په ښه توجه سره.دســـــنت سره داداکولو ډير اهتمام کـــــاووا او هغوي به يو له بلهٔ سنـــــتونه هم زده کول.

ددي اړتيا له مخي، احقر په يوه مجلس کښي د لمانځه سنت طريقه او په دي اړه چي کومي تيروتني رواج شوي دي. ددي تفصيل بيان کړي دی چي په دي سره اوريدونکو ته ډيره ګټه ترلاسه شوه.

ځيني دوستانو خپله رايه داسي ښرګنده کړه چي: دا خبري ديوي مختصري رسالي په صورت کښي چمتو شي . هر سړي به له هغي نه ګټه ترلاسه کړي.

نو په دي مختصره رساله کښي، دلمانځه سنت طريقه او دهغه په ادابو سره، داداکولو ترتيب بيانول مقصود دي.

الله تعالى دي همدا، زموږ ټولو لپاره ګټور وګرځوي او په دي سره دي دعمل کولو توفيق راپه برخه کړي. امين

دلمانځه دمسئلو په اړه، ډېر وړوکي او غټ کتابونه. بِحَمْدِالله خپاره شوي دي. دلته دلمانځه واړه مسئلي بيانول مقصود نه دي. بلکي، يوازي دلمانځه دارکانو هئيت (ډول) دسنت مطابق جوړولو لپاره، څو اړيني خبري بيانول دي او په هغو تيروتنو او غلطيو باندي تنبيه كول دي كوم چي نن زمان ډېر زيات رواج شوي دي.

په دې لنډو خبرو باندي، دعمل كولو له كبله به ان شاءالله دلمانځه لږ تر لږه ظاهري صورت دسنت سره جوړ شي اوبو مسلمان به دخپل پالونكي ذات، په حضور كښي اقلاً دغه عرض وړاندي كولاي شي چي:

تري محبوب كي يارب * شباهت لےكے آياهون
حقيقت اس كو توكردي * مين صورت لي كي آياهون
"يا ربه! ستا دمحبوب له شباهت سره راغلى يم.
دا ته حقيقت كړي، زه يوازي له صورت سره راغلى يم."

وماتوفيقي الابالله عليه توكلت واليه انيب

**احقر**

**محمدتقي عثماني عفي عنه**

دارالعلوم كورنگي. كراچي۱۴

# دلمانځه ترپيل وړاندي

## د ا خبري په ياد ولره او عملي يي کړه

۱- ستامخ د قبلي ولوري ته کيدل ضروري دي.

۲_ ته به سم اوسيده ولاړ يي او ستانظر به د سجدي پرځاي باندي وي. غاړه کښته کول او زنه له سيني سره مښلول هم مکروه دي. پرته له کومي اړتيا ، سينه کښته کول اودريدل هم صحيح ندي. داسي سيده او سم ودريږه چي نظر دي د سجدي پر ځاي وي.

۳_ ستاد پښو ګوتو مخ به هم د قبلي ولوري ته وي او دواړه پښي به دقبلي ولوري ته سمي وي (پښي ښي اوچپ لوري ته کږي ايښودل د سنت خلاف دي )

صحيح طريقه



غلطه طريقه



۴_ د دواړو پښو ترمنځ به لږ تر لږه د څلورو ګوتو په اندازه فاصله به وي.

۵_ که په جماعت سره لمونځ اداکوي نو صف به دي سيده وي. د سيده کولو ښه طريقه داده چي، هرسړی د خپلو دواړو پنډيو اخري څنډي د صف يا دهغه د ښبان په اخري څنډه باندي داسي کښيږدي



۶_ دجماعت په صورت کښي داخبره عملي کړه چي د ښي اوکيڼ لوري دولاړوخلکودبازوګانوسره ستا بازوګان يوځاي شوي وي اوپه منځ کښي کوم خالي ځاي نه وي .خودخالي ځاي دډکولولپاره دومره تنګي هم نه ده په کارچي په آرام سره دريدل ستونزمن شي.

۷- که مخکښي صف ډک شوي وي نو ، بل صف دي له منځ نه شروع کوي. دراسته يا چپه لوري څخه دي نه پيليږي. بياچي کوم خلک راسي، هغوي دي ددي خبري خيال وساتي چي صف دوواړو طرفونو ته برابر وي.

۸_ پايڅي دبجلکو نه کښته زړه ول، په هر حالت کښي ناروا دي. ښکاره خبره ده چي په لمانځه کښي د دي ناوړتوب نور هم ډيريږي .له دي امله په دي دځان اطمينان کوه چي پايڅي تربجلکو "پورته"تل لوړي وي.

۹_ دلاسونولستونو به بشپړلاسونه پټ کړي وي، فقط لاسونه به دي لوڅ وي .بعضي خلک لستوني ونغاړي لمونځ کوي،دا طريقه سمه نه ده.

۱۰-له داسي جامي سره لمونځ کول مکروه دي چي په هغي سره انسان دخلکو په وړاندي نشي تلاي.

# دلمانځه دپیل کیدلو په مهال

۱ـ په زړه کښې نیت وکړه چې، زه فلانۍ لمونځ کوم، په ژبه سره دنیت الفاظ ویل ضروري نه دي.

۲ـ لاسونه تر غوږونو پورې داسې اوچت کړه چې دلاس ورغوې دقبلې لورې ته وي او دبتو ګوتو سرونه له غوږونو سره یا خو بالکل یو ځای شي، یا ددوی برابر شي. پاته نورې ګوتې لوړې خواته سیده او سیخې وي.

ځینې خلک دورغوو مخ، دقبلې ولورې ته دکولو پرځای دغوږونو طرف ته برابر کړي. ځینې خــلک بیاغــــــــــوږونه په لاسونوسره بالکل پټ کړي. ځینې خلک لاسونه دبشپړ اوچتیدو نه پرته، لږ اشاره وکړي او ځینې خلک بیا دغوږونونرمې په لاسونو ونیسي.

دا ټولې طریقې غلطې او دسنت خلاف دي. ددې پرېښول په کار دي.

۳ـ په پورته ذکرشوې طریقې سره دلاسونو د اوچتولو په مهال، "الله اکبر" ولوله، بیا دښي لاس په

بته ګوته او کوچني ګوتي سره د کيڼ لاس پر خواوشا حلقه جوړه کړه او وېي نيسه. پاته دري ګوتي دچپ لاس پر شا داسي وغوړوه چي د دروسرو ګوتو سرونه دځنګلي خواته وي.

۴_ دواړه لاسونه ترنامه لږ لاندي کښېږده او په پورتنۍ طريقۍ سره يې ونيسه.

## د ولاړي په حالت کښي

۱_که يوازي لمونځ کوي،ياامامت کوي،نو "سُبْحانَک اللهُمَ... اَعُوذُبِالله... او بِسمِ الله..." بيا د فاتحه سورة (الحمد لله...) او يو بل سورت ولوله.

که په امام پسي لمونځ کوي،نو فقط "سُبْحَانَکَ اللهُمَ" ولوله، بيا پټه خوله شه. د امام قرائت ښه په توجه سره واوره. که امام په زوره قرائت نه وايه، نو دژبي دحرکت کولو نه پرته، دفاتحه د سورت فکر کوه.

۲_په لمانځه کښي دقرائت لپاره داضروري ده چي ژبي اوشونډانو ته په حرکت ورکولو قراءت وويل شي،

بلکه داډول قرائت وشي چي په خپله لوستونکي يي واوري.

ځيني خلک داسي قرائت کوي چي ژبه او شونډان يي حرکت نه کوي . دا طريقه سمه نه ده . ځيني بيا دقرائت پر ځاي په زړه، کښي د الفاظو تصور کوي . پدي ډول هم لمونځ نه اداء کيږي.

۳ـ کله چي خپله قرائت کوي، نو دفاتحه دسورت لوستلو په وخت کښي، ښه داده چي په هر آيت باندي ساه ايله کوي، بيا بل ايت ولولي،ډير لوي آيتونه په يوه ساه مه لوله.

مثلاً په " اَلْحَمْدُلله رَبِ الْعَالَمِين " باندي ساه ايله کړه . بيا په " الرحْمنِ الرحِيْم "باندي، بيا پر "مٰلِکِ يَوْمِ الدِين" باندي.

دا ډول دفاتِحه ټول سورة ولوله. خو له دې وروسته که په قرائت کښي، په يوه ساه تر يوه ډير ايتونه ولولي کوم باک نشته.

۴ـ پرته له کومي اړتيا دبدن وکومي برخي ته حرکت مه ورکوه. خومره په سکون سره چي ولاړيي،

هغو مره نښه ده . که دبدن دګــــرولو اړتيا پيداشي نويوازي يو لاس استعمال کړه او هغه هم د ډير سخت ضرورت په مهال او ډير لږ.

۵_ دبدن ټول زور، پر يوه پښه کول، بله پښه دغه ډول ايله پرېښول چي، پکښي کوږوالي راشي، د لمانځه د ادابو خلاف عمل دي.

له دي نه پرهيز وکړه .يا خو پر دواړو پښو برابر زور وکړه او يا پر يوه پښه زور وکړه خو، دا شان چي په بله پښه کښي کوږوالی رانشي.

۶_ که دي اررمی راشي، نو دبندولو يي بشپړه هڅه وکړه.

۷_ که دي ټيغ راخيژي، نو لومړي هوا په خوله کي يو ځاي کړه ،بيا يي کرار پرته له اوازه وباسه. په زوره ټيغ کښل دلمانځه دادابو خلاف دي.

۸- دولاړي په حالت کښي دي سترګي دسجدي پر ځـــای باندي وي.

دلته،هلـــته يا مخ ته دکتلو نه ډډه وکړه.

***************

# په رکـــوع کښې

رکوع ته د تللو په مهال، د دې خبرو ځانګړې خيال وساته:

۱- د خپل بدن پورتنۍ برخه دا ډول کښته کړه چې غاړه او شا تقريبا سره برابر شي نه خو تر دې زيات کښته، وي او نه تر دې کم وي.

۲_ د رکوع په مهال غاړه دومره مه کښته کوه چې زنه دې د سينې سره يوځاي شي او نه يې دومره اوچته لره چې غاړه د ملاڅخه لوړه شي، بلکه غاړه او ملا به سره برابر وي.

۳_ په رکوع کښې پښې سيده وي، په هغوي کښې به کوږوالی نه وي.

۴_ دواړه لاسونه پر زنګونونو باندې دا ډول کښېښږده چې د دواړو لاسونو ګوتې خلاصې وي. يعني د هرو دوو ګوتو تر منځ فاصله وي او دا ډول په ښي لاس سره ښی زنګون او په کيڼ لاس سره کيڼ زنګون ونيسه.

۵_ د رکوع په حالات کښې بازوګان سيده لرل په کار دي، په دې کښې کوږوالی راتلل نه دي په کار.

۶_ اقلاً دومره ځنډ په رکوع کښې وکړه چې په اطمنیان سره درې ځله "سبحان ربي العظیم" ولوستل شي.

۷_ د رکوع په حالت کښې به دې سترګې د پښو ولوري ته وي.

۸_ پر دواړو پښو به دې زور برابروي او د دواړو پښو بیډې به یو له بل سره مخامخ وي.

## له رکوع څخه د پورته کیدلو په وخت کښې

۱_ له رکوع څخه د ولاړیدلو په وخت دومره سیده شه چې، په بدن کښې کوم کوږوالی پاته نه شي.

۲_ په دې حالت کښې به هم نظر د سجدې پرځای وي.

۳_ ځینې خلک د پورته کیدلو په وخت کښې، د ولاړیدلو پرځاي فقط د ولاړیدلو اشاره کوي او د بدن د ټیټ والي په حالت کښې سجدې ته ستون شي. د دوي په ذمه د لمانځه راګرځول واجب دي.

له دې امله، ورځخه په سختۍ سره پرهیز وکړه تر څو چې د سیده کیدلو اطمینان ونه شي، سجدې ته مه ځه.

## سجدي ته دتللو په مهال

سجدي ته دتللو په مهال ددې طريقي خيال کوه چي:

۱ـ ترټولو وړاندي زنګنونه ټيټ کړه. دځمکي لوري ته يې دا ډول يوسه چي سينه دې دمخ وخواته ټيټه شي، کله چي دې زنګنونه پر ځمکه تکيه سول، بيا سينه ټيټه کړې.

۲ـ ترڅو چي دې زنګنونه پرځمکه نه وي تکيه کړي، تر هغه وخته دبدن دپورتنۍ برخي له ټيټولو حتي الامکان ډډه کوه.

نن زمان، سجدي ته دتللو، ددې مخصوص ادب څخه لاپروايي ډېره عامه شوې ده. ډېر خلک دپيل څخه سينه ومخ لوري ته ټيټه کړي اوسجدي ته لاړشي. خو صحيح طريقه هغه ده چي په ۱ او ۲ شميروکښي بيان شول. پرته له کومه عذره دا پرېښودل نه دي په کار.

۳ـ ترزنګنونو وروسته، لاسونه پرځمکه کښېږده، بيا پوزه اوبيا تندی.

**********

******

# په سجده کښې

۱ـ په سجده کښي سر ددواړو لاسونو تر منځ، دا ډول کښېږده چي، د دواړو ښتو ګوتو سرونه دغوږونو د نرميو مخي ته راشي.

۲ـ په سجده کښي د دواړو لاسونو ګوتي بندول په کار دي، يعني ګوتي بالکل سره مښتي وي او ددوي تر منځ فاصله نه وي.

۳ـ دګوتو مخ دقبلي لوري ته وي.

۴ـ څنګلي دځمکي څخه پورته لرل په کار دي، څنګلي پر ځمکه تکيه کول يا لګول سم عمل نه دی.

۵ـ دواړه متي به دبغلونو څخه جلا وي، له بغلونو سره بالکل يو ځاي کول يي نه دي په کار.

۶ـ څنګلي ښي او کيڼ لوري ته دومره ليري هم غوړول نه دي ښه چي، ورڅخه نژدي لمونځ اداکوونکو ته تکليف ورسيږي.

۷ـ ورنونه به له نس سره يو ځاي شوي نه وي، نس او ورنونه سره بيل لره.

۸ـ دټولي سـجدي په دوران کښي به دي پوزه پر

ځمکه ایښي وي، دځمکي څخه به يې نه اوچتوي.

۹_ دواړه پښي داډول ودروه چي، پندي جګي وي او ټولي ګوتي دقبلي ولور ته برابري شي، کوم خلک چي دخپلو پښو دجوړښت له کبله، پر ټولو ګوتو د کړولو قدرت نه لري، هغه چي يې څومره کړولای شي،دومره دي دکړولو اهتمام وکړي ،پرته له کومه مجبوري ګوتي سيده پر ځمکه لګول سم کارنه دی.

۱۰- ددې خبري خيال کوه چي دسجدي په دوران کښي پښي دځمکي څخه اوچتي نه شي،ځيني خلک دغه ډول سجده کوي چي دپښي يوه ګوته هم ديوي ګړی لپاره پر ځمکه نه تکيه کيږي.دا ډول سجده نه ادا کيږي او په نتيجه کښي لمونځ هم نه صحيح کيږي. له دې نه په اهتمام سره ډډه وکړه.

۱۱_ دسجدي په حالت کښي اقلاً دومره ځنډ وکړه چي دري ځله "سبحان ربي الاعلی" په اطمينان سره ولوستل شي.

يوازي تندي لګول او ژر اوچتول منع دي.

****************

## د دواړو سجدوپه منځ کښې

۱_ له یوې سجدې څخه چې را اوچت شې، پردواړو زنګونو یعني دالتحیات په شان سم کښینه .بیا بله سجده وکړه ،لږ را اوچتیدل دسیده کیدونه پرته، بله سجده کول ګناه ده. په دا ډول کولو کښې دلمانځه را ګرځول واجبیږي.

۲_ چپه پښه وغوړوه وربانديکښینه او راسته پښه دا ډول ودروه چې ګوتې یې کت(کږې) شي. مخ یې دقبلې ولورې ته شي. ځینې خلک دواړې پښې ودروې پر پندو کښیني. دغه طریقه صحیح نه ده.

۳_ دناستې په مهال، به دواړه لاسونه پر ورنو ایښې وي،خوګوتې به دزنګونولورې ته کږې نه وي . بلکه دګوتو سرونه دې دزنګونولمړنې کنارې ته ورسیږي.

۴_ دناستې په وخت دې نظر خپل تمر ته وي.

۵_ دومره وخت کښینه چې په دې کښې اقلا یوځل "سبحان الله" ولوستل شې او که دومره وخت کښیني چې په دې کښې: "اَللّهُم اغفِرلِيْ وَارحَمنِي وَاستُرنِي واجبُرنِي واهدِنِي وارزُقنِي."

ولوستل شي نو غوره دي.خو په فرض لمونځونو كښي ددي دلوستلو ضرورت نشته،په نفلونوكښي يي لوستل ښه دي.

## دوهمه سجده او له هغي نه اوچتيدل

۱_ دوهمي سجدي ته هم دغه شان لاړ شه چي مخكښي دواړه لاسونه پر ځمكه كښيږده ،بيا پوزه اوبيا تندی.

۲_ دسجدي هيئت هغسي په كار دی كوم چي په لمړي سجدي كښي بيان شوي دی.

۳_ دسجدي څخه داوچتيدلو په وخت كښي لومړي تندي دځمكي نه اوچت كړه،بيا پوزه،بيا لاسونه او بيا زنګنونه.

۴_ داوچتيدلو په وخت كښي پر ځمكه تكيه نه كول ښه دي.خو كه بدن چاغ او دروند وي يا دناروغي اوسپين ږيريتوب له امله څه مشكل وي نو بيا تكيه كول هم جايز دي

۵_تراوچتيدلووروسته،په هرركعت كښي د فاتحه ترسورت وړاندي، "بسم الله الرحمن الرحيم "ولوله.

## په قعده (ناسته) کښې

۱_ په قعده کښې د ناستې طریقه هغه ده کومه چې د سجدې و په مینځ کښې د ناستې بیان شوې دی.

۲_ د التحیات د لوستلو په وخت کښې، کله چې "اَشهَدُاَن لاَ" ورسیږې نو، د شهادت ګوته او چته کړه او اشاره وکړه او په "اِلا اللهُ" باندې یې کښته کړه.

۳_ د اشارې طریقه داده چې د منځ د ګوتې او بټې ګوتې سره حلقه جوړه کړه، کوچنۍ او ددې سره ملګرې ګوته بنده کړه او د شهادت ګوته دا رنګه او چته کړه چې ګوته د قبلې و لور ته مائله وي، بالکل یې سیده د آسمان لورې ته مه اوچتوه.

د "اِلااللهُ" لوستلو په وخت کښې د شهادت ګوته کښته کړه، خو د پاتو ګوتو هئیت چې د اشارې په وخت یې جوړ کړې دی هغه تر پایه هغسې وساته.

****************

************

## دسلام ګرځولو په مهال

۱ـ دواړو خواو ته دسلام ګرځولو په مهال غاړه دومره وګرځوه چې شاته ناست سړي ستا بڼخوګان وويني.

۲ـ دسلام ګرځولو په مهال نظر دي داوږو لورو ته په کار دی.

۳ـ کله چې ښــــي لوري ته غــاړه وګرځوي نو، **اَلسَّلَامُ عَلَيكُم ورحمةُ الله** ولوله. نيت وکړه چې ښي لوري ته چې کوم انسانان او ملائکي دي، هغو ته سلام کوم. کيڼ لوري ته دسلام ګرځولوپه وخت کښي دکيڼ لوري موجودوانسانانواوملائکوته دسلام کولونيت وکړه.

## ددعــــا طريقه

۱ـ ددعا طريقه داده چې دواړه لاسونه دومره اوچت شي چې ، سيني ته ورسيږي. د دواړو لاسونو ترمنځ لږ فاصله وي،نه خو لاسونه بالکل سره ومښلي او نه د داوړو ترمنځ ډيره فاصله وي.

۲ـ ددعا کولو په وخت، دلاسونو دننه برخه دمخ خواته ولره.

## دمیرمنو لمونځ

مخکښې چې دلمانځه کومه طریقه بیان شوه، هغه دنارینه لپاره وه،دمیرمنو لمونځ په لاندې کړوړو کښې دنارینه څخه بیل دی.

له دې امله دې میرمنې ددغو مسئلو خیال ساتې.

۱ـ ښځې دې دلمانځه دپیل کیدو نه وړاندې، دا خبرې عملي کړې چې، ددوې دمخ،لاسونو او پښو نه پرته،نورټول بدن په جامو باندې پټ وې.ځینې میرمنې دا ډول لمونځ کوې چې دهغوې ویښتان لوڅ وې. دځینو بیا تر څنګلو لاندې لاسونه لوڅ وې.دبعضو بیا غوږونه لوڅ وې. ځینې میرمنې دومره کوچنې پړونی استعمالوې چې ترهغه دلاندې ویښتان ځلیدونکې بریښې .داسې ټول کړه وړه ناجائز دې.که دلمانځه په وخت کښې مخ،لاسونه اودپښونه پرته دبدن کوم اندام هم دڅلورمې برخې برابر ،دومره وخت لوڅ پاته شې چې په هغه کښې، درې ځله "سبحان ربي العظیم" ولوستل شي نو لمونځ یې نه صحیح کیږي او کــه تر دې کم لوڅ پاته شي نو لمونځ یې صحیح کیږي، خو ګناه لري.

۲_ دمیرمنو لپاره، په خونه کښي لمونځ کول تر برنډي افضل دی او په برنډه کښي بي کول تر سراي افضل دی.

۳_ میرمني دي دلمانځه دپیل کیدوپه مهال، لاسونه ترغوږونو پوري نه، بلکه تراوږو پوري اوچتوي هغه دي هم په پړوني کښي دننه اوچتوي .دپړوني څخه دباندي دي نه باسي. (بهشتي زیور)

۴_میرمني دي لاسونه پر سینه باندي دا ډول ونیسي چي، دښي لاس ورغوي دي دچپ لاس پر شا باندي کښیږدي ،دنارینه په شان دي تر نامه لاندي نه ږدي.

۵_ په رکوع کښي دمیرمنو لپاره دنارینه په شان ملا بلکل سیده کول ضروري نه دي .ښځو ته دنارینه په خلاف لږ تمیدل په کار دي.

(طحطاوي علي المراقي ۱۴۱مخ)

۶_ درکوع په وخت کي به نارینه ګوتي پر زنګنونو باندي خلاصي ایښي وي خو ، دمیرمنو لپاره حکم دا دی چي هغوي دي ګوتي سره ومښلوي.

یعني دګوتو ترمنځ دي فاصله نه وي. (درمختار)

۷ـ میرمنوته په رکوع کښې خپلې پښې بالکل سیده لرل نه دي په کار. بلکې ورته داسې دریدل په کار دي چې زنګنونوته دمخې لورې ته لږ میلان ورکړي.
(درمختار)

۸ـ نارینه ته حکم دادی چې، په رکوع کښې یې بازوګان(متان) دبغلونو نه بیل او کش وي. خو دښځو لپاره دا حکم دی چې بازوګان دي دبغلونو سره مښتي وي.( درمختار )

۹ـ د ولاړې په مهال دي میرمنې دواړې پښې یو ځای کړې ولرې . په ځانګړې توګه دي ببیا دواړې بجلکې(ببږی) تقریبا سره مښتي وي،دپښو تر مینځ دي فاصله نه وي. (بهشتي زیور)

۱۰ـ سجدې ته دتللو په مهال، دنارینه لپاره، دا طریقه بیان شوه چې، تر څو زنګنونه پر ځمکه نه وي تکیه شوي،تر هغه وخته دي سینه نه کښته کوي،خو دښځو لپاره دغه طریقه نه ده،هغوي به په پیل کښې سینه کښته کوي سجدې ته به ځي.

۱۱ـ میرمنو ته سجده، دا ډول په کار ده چې، د هغوي نس له ورنونو سره بالکل مښتی وي او بازوګان

له بغلونو سره يو ځاي شوي وي .دا رنگه ميرمن دي
پښه ددرولو پر ځاي. راسته خواته وباسي او ودي
غوړوي.

۱۲_ دنارينه لپاره په سجده کښي ځنگلي پر ځمکه
ايښول منع دي .خو وښخو ته دغه حکم دي چي،
دځنگلو سره، سره لاسونه پر ځمکه ايښودل په کار دي.
(درمختار)

۱۳_ د دوو سجدو په منځ او دالتحيات لوستلو
لپاره چي کله کښيني نو دي پر چپ کوناټي کښيني او
دواړي پښي دي راسته لوري ته وباسي او پر راسته
پندي دي کښيږدي (طحطاوي)

۱۴_ دنارينه لپاره حکم دادي چي، هغه دي په
رکوع کښي دگوتو دخلاصو لرلو اهتمام وکړي .په
سجده کښي دبندولو او دلمانځه په نورو اعمالو کښي
دي پر خپل حال پريږدي .نه خو دي دبندولو اهتمام
کوي نه دخلاصولو.خو دميرمني لپاره ،په هر حالت
کښي حکم دادي چي. هغوي دي گوتي بندي
ولري.يعني ددوي تر منځ دي فاصله نه پريږدي .په

رکوع کښي هم په سجده کښي هم .ددوو سجدو تر مینځ هم او په ناسته کښي هم:

۱۵_ دښځو جماعت کول مکروه دي .دهغوي لپاره لمونځ کول ښه دي .هو که دکور محرم کسان په کور کښي جماعت کوي نو دهغوي سره په جماعت کښي په ګډېدلو کښي کوم باک نشته .خو په داسي صورت کښي بالکل دنارینه وو شاته دریدل ضروري دي .برابر او څنګ ته دي هیڅکله نه دریږي.

## دمسجد څو ضروري آداب

۱_ مسجد ته دننوتلو په مهال دغه دعا ولوله:

بسم الله والصلاة والسلام على رسول الله صلى الله عليه وسلم، اللهم افتح لي ابواب رحمتك.

۲_ مسجد ته دننوتلو په وخت کښي دا نیت وکړه چي څومره وخت په مسجد کښي تیروم،په اعتکاف کښي یم،دا ډول ان شاءالله داعتکاف ثواب هم درکول کیږي.

۳_مسجد ته ترننوتلو وروسته، په لومړي صـــف کښي کښیناستل افــضل دي خو ، که ځاي ډک شوي

وي نو چيري چي ځاي ومومي هلته کښينه . دخلکو پرغاړو ګامونه او چټول او مخي ته تلل جايز نه دي

۴_ کوم خلک چي په مسجد کښي ناست، په ذکر يا تلاوت بوخت وي، هغوي ته سلام اچول نه دي په کار، هو !که له هغوي نه يو په خپله متوجه شي او په ذکر او نور عبادت کښي بوخت نه وي .نو هغه ته دسلام اچولو څه باک نشته

۵- په مسجد کښي که سنت يا نفلونه کول وي نو ددې لپاره داسي ځاي انتخاب کړه .چي د وړاندي له خوا دخلکو دتيريدلو احتمال نه وي.

ځيني خلک دشاپه صفونو کښي لمونځ شروع کړي، حال داچي په مخکني صفونو کښي خالي ځاي وي. ددوي دغلطي له کبله ترليري ځاي پوري دخلکو لپاره تيريدل ستونزمن شي اودهغوي لپاره لاره اوږده وي.

داسي کول ګناه دي او که کوم سړي په داسي حالت کښي دلمونځ کوونکي له مخي نه تير شو نو ددې تيريدو ګناه هم پردي (بې ځايه) لمونځ کوونکي باندي ده.

٦_ مسجد ته دننوتلو وروسته، که لمانځه ته څه وخت وي، نو ترکښیناستلو وړاندي، دوه رکعته د **تحیة المسجد** په نیت سره ادا کړه. ددي ډیر ثواب وي. که وخت نه وي نو په سنتو کښي د **تحیة المسجد** نیت وکړه. که دسنت دکولو وخت نه وو او جماعت ولاړ وي نو په فرضو کښي دغه نیت کولای شي.

٧_ تر څو چي په مسجد کښي ناست یي ذکر کوه. په ځانګړي توګه ددي کلمي ورد کوه:

"سُبحانَ اللهِ والحمدُلله ولا اله الاالله واللهُ اکبرُ."

٨_ په مسجد کښي دناستي په وخت کښي پرته له کوم اړتیا خبري مه کوه. مه داسي کار کوه چي دهغه نه دلمانځه کوونکو یاذکرکوونکو په عبادت کښي څه تاوان پیښ شي.

٩_ که لمونځ دریدلي وي نو مخکني صفونه مخکښي ډک کړه. که په رومبني صفونو کښي ځای خالي وي نو دشا په صف کښي دریدل جایز نه دي.

١٠_ دجمعي دخطبي لپاره چي امام منبر ته راشي نو دهغه وخت څخه بیا دلمانځه تر ختمیدلو پوري څه ویل

یا لمونځ کول یا یو چاته سلام یاد سلام جواب ورکول جایز نه دي. په دغه وخت کښې که یو څوک څه خبره کوي نو هغه ته دچپه خوله کیدلو تاکید کول هم جایز نه دي.

۱۱_ دخطبې په مهال، دا ډول کښیناستل په کار دي دي لکه څرنګه چې په التحیات کښې کښیني. ځیني خلک په لمړي خطبه کښې لاسونه ونیسي کښیني او په بله خطبه کښې لاسونه پرو ورنو باندي ایږدي.

دا طریقه بې اصله او بې دلیله ده. په دواړو خطبو کې لاسونه په ورونو ایښنودل دي.

۱۲_ دهرداسې عمل نه ډډه کوه چې هغه په مسجد کې مردار وایسي، بدبوئي خوره شي یا یو بل چاته تکلیف ورسیږي.

۱۳_ یو بل سړي که په غلط کار باندي ووینې. نو په ارام او نرمي سره یې پوه کړه. دخلکو په وړاندي دهغه د رسوا کولو، غصه او جګړي څخه بشپړ پرهیز په کار دي.

۱۴_ دمسجد څخه دوتلو په وخت کښې چپه پښه راوباسه او دغه دعا ولوله:

بِسْمِ اللهِ وَالصَّلاةُ والسلامُ على رسُولِ اللهِ
اللّٰهُمَّ اني اسئالک من فضلک .

